# پیغام



محمد موسیٰ شفیق

سـریزه : الحاج ننگیال

# پیغام

وینا وال : محمّد موسیٰ شفیق

سریزه : الحاج ننگیال




دکتاب نوم : پیغام

ویناوال : محمدموسی شفیق

سریزه : الحاج ننگیال

خطاط : نورالدین هنریار

خپرونکی : فرهنګ جهاد

نیټه : د ۱۳۶۷ لمریزکال دثورمیاشت



دفرهنګ جهاد پستی او بانکی پته

P. o Box No. : 1107

G. P. O

پشاور پاکستان

حساب بانکی : حبیب بانک 3014

میوه مندوی برانچ

پشاور پاکستان

بسم الله الرحمن الرحیم

# پیغام او شفیق

## ۱- پیغام

پیغام د شهید شفیق «دده په قول» د لالهانده او وارخطا زړه لیتوب دوخت یو رنګین سوغات دی او د دوی د ژوند دیوې تیاکلي دورې تاثرات او خاطرې.

پیغام د مرحوم شفیق د دارالعلوم د زده کړې د دورې ادبي پانګه ده او د هغه مهال سرمایه چې شفیق د مصر او امریکې د لوړو تحصیلاتو د دوسته د سترو دولتي پوستونو له شا د هغې ارمان کړی او ویلی دي: «... که زه د دې او س نه یم کم او کیف خبر وای ما به له هر یو کال نه په هماغه تنګ، تریو او تپه تیاره دارالعلوم کې د وه اودری کلونه جوړ کړای وای».

خو مرحوم شفیق د نن وارخطا او لالهانده زلمي د یوه شاعر، ادیب او لیکوال په صفت دومره نه پیژني - د هغه وزارت او صدارت او په مجموع کې سیاست د دوی هنر او فن تر څپل سیوري لاندې داسې پټ کړ چې نن د مرحوم شفیق د پاخه فن نه ډیر لږ کسان خبر تیا لري په افغانستان کې چې هر فنان، لیکوال او ادیب سترو دولتي پوستونو او لوړ

اجتماعي او اداري موقف ته رسيدلی دی هغوی بيا خپل فن او هنر ته داسې دمه ورکړی چې بيا يې ځکه څوک نه ځکمی آثار لولی او حال يې ګوري -
دا ګومان هم نشی کولی چې دا دی د پرون هغه سترګور ليکوال او ويناوال وی چې دی يې اثر مطالعه کوي .

نن هم رهوړ د جهاد مشران چې ښوا ليکوال هم و وينا وال هم او - صحافيان هم هغه د پرون ليکوال نه بر يښي کوم چې په شرعيات - عرفان - قضا ادب - ګهيځ - پيام حق - وړانګه او . . . خپرونو کې ليده کېدل .

دلته د مرحوم ماستر فضل کريم د « ليکوال مړشو » ليکنه سړي ته دکا ښې کرښه وبرېښي ، او زه خيله چې مرحوم شفيق څومره ديو شاعر ، ليکوال او اديب په صفت پېژنم دومره يې دوزير او صدر اعظم په نامه نه پېژنم ، ځکه د ده ليکوالی او په مجموع کې فن ابدي دی او تلپاته . نن هم د شفيق فن ژوندی دی او سبا هم . د هغه وزارت او صدارت نور نه ليده کېږي خو « پيغام » او « عبقريان » به يې ترقيامته ژوندي وي او هم دغه ورد دوی نورليکنې او شعرونه هم .

د شفيق پيغام چې څومره د پرون ځوانانو ته د بيداری د جرس حيثيت درلود نن هم هماغه تأثير ، ولوله او جذبه لري او د نن زلمي هم ورته اړدی او هم وي . دغه پيغام د څه مشخصو او موسمي حالاتو او شرايطو پيغام ندی . دا پيغام د پرون له پاره هم و د نن هم دی او د سبا هم دغه پيغام تېر ختونه سترګو ته دروي او نراره يادونه راسپړي له نن هم خبری کوی او د راتلونکی بڼه هم ښيي .

# شفيق پخپله ليکي:

«زما نوم محمد موسی شفيق دی پلار مې مولوي محمد ابراهيم کاموي نومېږي. زموږ کورنۍ د ننګرهار ولايت دکامې په سيمه کې اوسېږي او يو اوږد علمي تاريخ لري.

زه پخپله دکابل په ښار کې چېرته چې زما پلار ډېره موده کارکاوه د ۱۳۰۸ ه ش کال دجوزا په پنځمه زېږېدلی يم.

زما رسمي تحصيلات په ابتدايي مرحله کې د کامې او کابل په مکتبونو کې بنه نيولی بيا وروسته د پلار په اراده او امر د ننګرهار ولايت د نجم المدارس په مدرسه کې شامل شوم. دوه کاله وروسته د کابل عربي دارالعلوم مدرسې ته راغلم چېرته مې چې دولسم صنف خلاص کړ او مولوي ترې راووتلم، د مدرسې وروسته په شاهي دارالتحرير کې مقرر شوم او بيا وروسته د پوهنې وزارت لخوا مصر ته د تحصيل لپاره ولېږل شوم او دهغه ځای نه د تحصيل د ختم نه وروسته امريکې ته ولاړم.

زما د تحصيل درجه داده؛

دبکلوريا معادله شهادتنامه دکابل له عربي دارالعلوم څخه، دليسانس

شهادتنامه له مصر څخه ، په عدلي چارو کې د ماسترۍ شهادتنامه له مصر څخه ، په مقایسوي حقوقو کې د ماسترۍ شهادتنامه له امریکې څخه.

د مور ژبه مې پارسي او د پلار مې پښتو ده او ما ورسره عربي او انګلیسي هم لوستلې دي

زما په تربیه کې لومړی مؤثر شخص زما پلار دی د هغه د پرو مثبتو افکارو ما کې تاثیر کړیدی او ځینې هغه نظریات یې هم په ما تحمیل شوي چې د خپلې زمانې د پاره هغه ته مفید ښکاره کېدل مګر اوس دیو منفي - جریان شکل لري. زما پلار د هغه اوږد او حساس ماموریت له کبله چې د افغانستان په اوسنی او پخوانی دوروکې یې سرته رسولی د افغانستان په تاریخ کې دیو معین ذهنیت نمایندګي کوي ، زه په خپله په خپل ځان کې د هغه د مثبتو او کمزورو نظریاتو تاثیرات ګورم ، د هغه نه وروسته په اجتماعي ژوند کې د پښتو ځینو نومیالیو ادیبانو زما په تربیه کې برخه اخیستې ده او په دارالعلوم کې د مولانا غلام نبي کاموي اثر زما په فکر باندې د - مخصوصې یادونې وړ دی .

په مصر کې مې د ښاغلی « داوي » نه هم ډېره مستقیمه استفاده وکړه او د قاهرې ثقافتي محیط د رسمي تحصیل نه علاوه زما د فکر په وسعت باندې زیات تأثیر وکړ ، د امریکې سفر او اقامت د غربي ژوندانه د طرز سره آشنا کړم او بالاخره د دې مختلفو مؤثراتو د تفاعل په نتیجه کې ما سره هم یو شمېر ثابت نظریات د ژوندانه په باب کې پیدا شول چې زه ورته خپله لاره وایم او د ډېر دوستان لرم چې موافقه ورسره نلري .

زما فعالیت د حقوقو او قوانینو په ساحه کې دی وظیفه مې د عدلیې

په وزارت کې د قوانینو د لوی مدیریت اداره او د حقوقو او سیاسي علومو په پوهنځي کې د خاص بین المللي حقوقو او د مقایسوي حقوقو تدریس دی.

جرایدو او مجلاتو ته مقالې هم لیکم او کله کله مې پخوا شعر هم وایه او اوس هم د شعر شیطان کله کله را باندې پېښه کوي....*

شفیق لیکلي ؛ جراید و او مجلاتو ته هم مقالې لیکم او کله کله مې پخوا هم شعر وایه او اوس هم را باندې کله کله د شعر شیطان پېښه کوي. خو زه دا وایم چې مرحوم شفیق دري او پښتو ادب ته د روند، مثالي او بنسټیز کارکړه دوی د لنډې کیسې لیکلو لارې په غښتلې کړې او د نوي لیکوالو له پاره یې ځای په ځای د خپل فکر او فن د یوې ځلولې دې دوی معیاري افسانې و لیکلې د فن په لحاظ په تول پوره او د چاپېریال د مسلطو شرایطو او بېنې انځور کړی او د تولنې د نیمګړتیاوو د سمون په لار کې زړه کړې ور .

هغه وخت چې افسانې لا د هېواد په خپرونو کې غزونې نه وې کړې. په دې ډول شفیق په پښتو ادب کې د لنډې کیسې او انقلابي شعر د کاروان جرس وغږاوه او په پوره ډاډ سره وېلای شو چې که مرحوم شفیق سیاست او اداري بوختیاوو نه وی مصروف کړی نن به د دوی فن د پښتو او دري ادب د اوج موج او معراج پورې د رولې وای او ادبیاتو ته به یې د خپل لوړ استعداد او نبوغ له مخې داسې هراړخیز کار کړی و چې د تخلیق او تحقیق په دواړو ډګرونو کې به یې په سیمه کې بر او لوړ مقام ګټلی وای.

---

* – او سنی لیکوال د ۱۳۴۱ لمریز چاپ

دا ښايي د شفيق او څونورو کوټو په شمېر ليکوالو او اديبانو ځانګړنه وي چې په دوارو ژبو دري او پښتو کې يې پاخه معياري او کره ادبي او هنري آثار رامنځ ته کړي دي داسې چې لوستونکي دا نشي احساسولی چې دليکوال مورنۍ ژبه کومه ده .

د مرحوم شفيق دري او پښتو افسانې چې څو کلونو لپاره نو دا تو پير ورته کوان شي څو پر بېکړوکړي چې پښتو ليکنه يې پخه وکمني او که دري. دا د شفيق د هغه مهال ادبي فن پارې وې چې ده لا د ځوانۍ او تحصيل شپې تېرولې او سرې دا اتکل کولای شي چې وروسته به د دوی فن څومره پرمختګ او ارتقايي منزل وهلی وي. د دوی د ځوانۍ ليکنې له يوه ځانګړي کره او استادانه انداز او اسلوب څخه برخمنې دي .چې د دوی نبوغ ،استعداد او ذوق په ښه توګه ترې څرګندېدای شي.

پدې ډول ويلای شو چې که څه هم شفيق د ځينو وجوهاتو له مخې د کميت په لحاظ لږ ادبي آثار پرې ايښي خو د کيفيت په لحاظ ډېر استادانه ، معياري او د ټوند او شرايطو د غوښتنې سره برابر مواد او د الهام او پيغام له اړخه يې ډېرې موندلی شي.

. ويل کېږي چې شفيق د داود خان له کودتا وروسته په زندان کې هم ارزښتناکه ليکنې او پلټنې کړې او د قرآن کريم تفسير يې کښلی دی چې که له منځه نه وی تللی دا به زموږ د اسلامي فرهنګ د بډاينې ډېره لويه پانګه وی .

# شفیق د خپل فن په هنداره کې

شفیق انقلابي شاعر ؤ. د هغه شاعري او په مجموع کې فن د پرګنو له هیلو او ارمانونو سره تړلې ؤ او د هغه د فن خښتې او مساله د تړلني او چاپیریال وضعه او مسلط شرایط وو.

شفیق د یره دراک او سترګور وینا وال په توګه د خپل ولس ستونزې او دردونه د شعر په ژبه بیانول او د فن او هنر په ګوتو یې د هغو سمون او علاج انځوراوه، د هغه فکر، ورځ او خیال لوړ، نظر یې ځیرؤ او ژور.

هغه د خپلو خلکو پر دردونو دردېده ـ د ولس درد د هغه خپل درد ؤ د قام مصیبت د هغه مصیبت ؤ او د وګړو پرېشاني او بد حالي د هغه خپله پرېشاني وه ګویا هغه د خپل وجود په زره زره د غریب، مظلوم، وږي بې کوره او کړېدلي هره سا نده ـ هر فریاد ـ هر درد او هر کړاو داسې محسوساوه لکه چې پده خپله تېرېږي او دې ځان په بېوله معنا د هغه په ځای ګڼي دا زما خبره نده د ده شعرونه دغه ټکي ځرګندوي او د ده فن د دې خبرې شاهدي ورکوي او ـ

ړاسپړي يي .

هغه يواځې ځانته سوکالي نه غوښته هغه دقام اوولس د - ښېگړه و مين اولېواله ؤ پدغه مينه کې هغه دپټنګ د سربازی د جذبې غوښتونکی ؤ اوديوه بې خوده لېونی دسرشاره استغنا هيله من ، چې ژخمي زړه يې له نورو پرهرژلوسره په وينو کې نوډم ورنګېږي :

استغنا ديوه بې خوده ديوانه را
پاکيزه يوه د مينې کاشانه را
زخمي زړه مې لا په نورو وينو رنګ کړه
سربازی ديوه سرتيري پروا نه را

شفيق پدې ګروهمن ؤ چې د خپل ولس وېرجنه وضعه يې د مبارزې اويوه مثبت اوښتون له لارې بدلېدلا ی شي ځکه خود حق په لارکې هغه دمنصور د سربازی د ولولواوهمت غوښتنه کوي :

درد او غم د محبت کې خوندسوررا
ډېره ځای په ارمانوډکوه طوررا
چې دحق له پاره دارپه لېمه ښکل کړم
هومره جوش د سربازی لکه منصوررا

شفيق چې ګوري د هېواد ځوان تو کم د غربي ماديت د تورې بلا کومې ته نژدې کېږي او ننني تش په نوم تمدن څه ورډ معنا او روحانيت په ګورتالان کړې اود ژوند فطري بنه يې بدله کړېده نوله همدې ځايه هغه د ترقي په لوړېه معنوی اساس دين غوښتنه

کوي هو! دمنزل په لور دباد په څېر د چټک یون:

ماديت دغرب لاهو کړو تباه کېږو
ژموږ روح ته یو غیبي غوندي امداد را
معنوي اساس مو ټینګ په ډېر قدرت کړه
د منزل په لوري بيا منډه ی د باد را

شفيق - زړه يواځې د توحيد ځای بولي - نورې ميني او غوښتني له زړه څخه لېرې کوي او د زړه حرم له هر ډول بوتانو پاک او سپېڅلی غواړي:

آئينه چې دجهان د ننداره شي
دا يو موږ ته درد منده ړه مې جام دجم را
د توحيد لمبې مې سرې لره سينه کې
له بوتانو نه خالي دزړه حرم را

شفيق دشلم قرن د جاهليت او وحشت په تيارو کې دحق د ځلنده مشال په رڼا کې د پرمختګ دمنزل لار ټاکي که نه نو بيا به تولنه يوه لاروركې ټولنه وي له معنا او روحانيت څخه لرې او د ماديت په ژولنو کې ښکېل:

په ځيګر درد او مينې سوی داغ را
سينه ټوله دمعنى د ګلو باغ را
دې تياره سفر کې لار رانه ورکېږي
ته په لاس د حقيقت ښکلی څراغ را

له شفيق سره د ډېر هيواد د پرمختګ او ترقي تلوسه وه او پدې

خوږېده چې څنګه يې هېواد د طبيعي خداى ورکړې شتمنيو سره ښېرته پاته دى څکه خوهغه د دې ارمانجن و چې هېواد يې څومره چې ژر کېږي د ېره تګ او ترقي منزل ته ورسېږي له همدې امله هغه په شپه کې د کال له منزل وهلو پېرته بيله لار نه ليده:

دې تورتم کې لکه لمر هومره مشال را
د ېرو څکې لاروو پوري وصال را
قافلي نه وروسته کېږو ساعت کم دى
په شپه کې مونږ ته توان د تلو د کال را

مونږ څکې وويل چې شفيق چې هر څه له خدايه غوښتل د ولس او هېواد له پاره يې غوښتل او خپل ټول استعداد او صلاحيتونه يې دغه هدف ته وقف کړي وو حتى خپل ذوق او تمنا هم:

مال نړو زخمي زخمي په درد دوا را
آزادي او حريت پدې دنيا را
چې د قام په دردمې وخوري هغه خوښ کړي
هسې شاني ښکلي ذوق وتمنا را

بل ځاى لدې هم پل څکې بېز دي او وايي:

سينه پاکه له وهمونو له وسواس را
سنه محيط کې مې آوازله انعکاس را
چې خدمت يې قوت ورکړي قام تېر ته
هغه مې هغه با زوا وهغه لاس را

شفيق چې پر خپل هېواد مسلط نامطلوب شرايط کوري چې د

ځینو منفي سیاستونو لوري څنګه د ده وطن د بلا خولې او دبربادی کومې ته نژدې کړی نو لکه هر وطن دوست شاعر دی هم وځوربږي خوله د غه ډول کواښونو سره د مقابلې له پاره د ولس د ټولو پرګنو د ټینګ وحدت او هراړخیز تحرک غږ پورته کوي چې د راروان خطرناک سیلاب مخه و نیسي د هغه سره سیلاب مخه چې په رښتیا هم تباکونکی او ورانوونکی.

که دا یو چې هم پدې شانی او سیږو
نو په مړو او معدومو به شمیرېږو
راځۍ هله چې لاسونه سره ورکړو
ګني دا سیلاب چې راغی تباه کیږو

هغه له وطن سره د مینې او د خپل ضمیر غږ او د وجدان او احساس د څرګندونو په ډول ترجماني کوي:

مونږ په ایشیا کې یو مسعود افغانستان غواړو
مونږ حکومت او حاکمیت د پاک قران غواړو
اباد په سوله امنیت بانديې جهان غواړو

د قام خادم چې وي هغه ځلمی امام دی زمونږ
لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زمونږ

شفیق د خپلې لارې او مرام له پاره د فعالیت او مبارزې ستونزې لیدلی او پدې لارکې یې کړاوونه او ناخوالې یې حتمي ګڼلی خو لدې سره سره ؤچې حوادث یې د ارادې لوری نشي بدلولی او ستونزې او خطرونه یې له هدف څخه نشي ګرځولی:

مړه به نشي اراده مې حــاد ثو کې
راسره چې عالي دومره روحيات دی

شاعران جذباتي محلوق دي شفيق ته هم چې کله درد ورشي او د ظالم لاسونه هماغسې د مظلوم په وهلو تکولو شــــنه وکوري نو دا فـرياد يې له خولې ووځي :

دا ټومبي مې چې اغزي د زړه په سترګو
کوم بې رحمه کوم ظالم او کوم صياد دی
چې آسمان په ظالمانو نه رالــوېږي
معلومېږي بې تاثيره مې فـرياد دی.

شفيق د خپل اسلامي او ملي غرور په تکيه پر خپلو ټولو بد خواهانو او دښمنانو يې درو ند او داړمن غږ کـوي، خپل تېر برم ورته يادوي او په شومو نيتونو پورې يې خاندي او ټوکې کـوي :

دبستان کې د ايشيا چې زه استا د وم
تا لوستله هغه وخت کې سيپاره
مخ دې تور شه او س زما سره دعوه کړې
ته او خدای نو په هغه قـــواره

شفيق متعهد او ژمن شاعر دی هغه شعر او ادب د خوشې خيالي او رنګينو تصوراتو لفاظي نه ګڼله او نه د مداحې وسيله - هغه د شعر او ادب له پاره د تعهد او مسلک پر ضرورت قائل دی - هغه ادب د ژوند، هدف او مرام له پاره پر اصل ګروهمن دی. هغه بې تعهده او بې مسلکه شاعر ورکه غواړي او پر هغه اور لګوي.

او ر په ژوندون پورې کړه چې نوي آزادي پکې
ورکه شاعري شه چې مسلك ورسره نه وي

هو نن کې مو وویل چې مرحوم شفیق دیوه شاعر او ادیب په توګه پېژنو نه د وزیر - سفیر او صدر اعظم په نوم د شعر له مخې یې پېژنو او د فن په هنداره کې ورته ګورو د هغه شعر او فن په هنداره کې چې د دوی د ژوند دیوې تاکلې دورې ادبي پانګه او تاثرات ګڼل شي او لکه څنګه چې څرګنده کړې شوه د هغه فن د ژوند له پاره دی د پرګنو د زړونو غږ او د ضمیر آواز دی په ټولنه کې د مسلطو شرایطو منعکس کوونکی او د وخت نماینده - چې د شاعر د هغه مینې او تلوسې اراګه بنه تر بې څرګندېدای شي چې هغه یې د خپلې ټولنې د نیمګړتیا وو د سمون او پرمختګ او سوکالۍ له پاره لري.

هغه خپل فن د مقصدیت په زانګو او د اجتماع په غېږ کې رالوی کړی د هغه د شعر هر بیت له ظلم څخه د نفرت او د خائن په مقابل کې د - کینې داور بخری ښندي او د مظلوم او بېوزلي په زخمونو پټې لګوي - ځکه خو د هغه فن ابدي دی او تلپاتې د پرون هم د نن هم او د سبا هم.

بې ځایه به نوي چې د هېواد د نامتو وینا وال قدرمن غمخور صیب د غه شعر را غبرګ کړم، چې محمد موسی شفیق یې د افغاني کوه طور موسی ګڼلی:

ته شفیق یې ته رفیق یې ته موسیٰ زموږ د طور یې
نوم دې ځکه د زړه سره خوږ زړونو په جهان شو *

---

*— وګ لویه هنګامه د عبدالله غمخور اثر ۱۵۳ - ۱۵۴ مخونه.

بناغلی صباح الدین کشککی په «دهٔ قانون اساسی» کې لیکي:

ما شفیق له هغه وخته پېژانده کله چې د ۱۹۵۰ کال د لسیزې په وروستیو کې د واړو خپلې زده کړې په بهرکې سرته رسولې وې او هېواد ته راستانه شوی وو. موږ د خپل هېواد د پرمختګ او سوکالۍ د پاره ګډې نظرې درلودې. او د واړو د هغو اصلاحاتو پلي کول چې بیا وروسته یې د ډېرو برخه په اساسي قانون کې هم شامله کړې شوه د هېواد د ترقۍ له پاره معقوله او سمه لار ګڼله.

کله چې شفیق د ۱۹۷۲ کال د نومبر د میاشتې په لومړیو کې له ما غوښتنه وکړه چې دده په حکومت کې د اطلاعاتو او کلتور د وزیر په توګه برخه واخلم ما د هغه دا غوښتنه په دوو شرطونو ومنله - په حکومتي چارو کې د سلطنتي کورنۍ د غړو د لاس وهنو مخه نیول او د حکومت سره پیوسته د یوه تیم رامنځته کېدل چې د هغه په څنګ کې ما ته صلاحیت راکړې شي چې د هېواد په مطبوعاتو کې بنیا دي بدلونونه رامنځته کړم.

د سلطنتي کورنۍ د غړو په منځ کې د شفیق پرخلاف احساس دومره تنګ او تېز شوی وو چې ما له هغه سره په صراحت کې یو شمېر په خبرو کې دا موضوع رامنځته کړه هغه وویل چې زه هم له ستونزې ښه خبر یم. د سلطنتي کورنۍ غړي په هېواد کې د رامنځته شوو پېښو نه خواشیني شوي وو او پوهېدل چې په هره بڼه به د قدرت واګې د دوی له لاسه ونه وځي. هغوی پخپله مخه کې د کلکې ارادې خاوند یو صدراعظم لیده چې په حکومتي چارو کې د سلطنتي کورنۍ د غړو د لاس وهنې د - مخنیوي په ګډون یې په اساسي قانون کې د شاملو موادو د پلي کولو

پخه اراده کړې وه.

د سلطنتي کورنۍ ځینې غړي او کېنې لاسي له دغه بدلون څخه په ویره کې شول. هغوی پخپل څنګ کې دېرې نوې دورې او پرېکنده او پاخه هوډ مشرتابه رامنځته کېدل لیدل چې په راتلونکې کې یې د قدرت د لاسته راوړلو دپاره د هغوی پخوانی هیلې له منځه وړلې.

شفیق د سیاسي ګوندونو، د ولایتونو د جرګو او ښاروالیو د قانون په پلې کولو کې چې هغوی ته بنیادي ضرورت محسوسېده د پاد شاه منظوري ترلاسه کړه. له دې پرته د هغه حکومت په پام کې لرله چې د مظاهرو په ګډون د عامو غونډو د تنظیم قانون هم پلې کړي.

د مطبوعاتو قانون چې په ۱۹۶۵ کال کې د محمد یوسف د انتقالي حکومت په دوره کې نافذ شوی وو هم تر بیا کتنې لاندې و نیول شو. پرازې هغه جریدو د خپرېدو حق درلود چې په یقیني، بشپړه او فعاله توګه یې د اساسي قانون ارزښتونه د هغه د هدف او متن په نظر کې نیولو په پام کې نیول.

د ملکي مامورینو قانون چې د هغه تصویب د ژبې پر مسئله - ځنډېدلی و تصویب شو او په هغه پورې اړوند اختلافونه په اریانوونکې ډول له منځه یووړل شول.

د دې دپاره چې د غیر حکومتي مطبوعاتو سره یې مرسته کړې وي د هغوژمنو پر بنا چې د حکومت په کړنلاره کې یې بنه نیولې وه اعلان کړه چې د حکومتي اعلانونو موسسه به د او نیزو جریدو په سلو کې د یرش او د ورځپاڼو په سلو کې شل چاپي لګښتونه د دولتي اعلانونو له لارې ورکوي. د دې پرې لیکلی صدر اعظم شفیق و توانېده چې د

آزاد و مطبوعاتو سره یو ډول بنې اړیکې را منځته کړي.

د شفیق په دوره کې لا هم د افغانستان د خپلو خپرونو په لړ کې ځینو وخته آذان پیل کړ چې د هغې وروسته به د هېواد له نامتو عالمانو نه یوه تن د اسلام د سپېڅلي دین د ارزښتونو په هکله کې د هېواد د پرمختګ او سوکالۍ د پاره دعا کوله.

د شفیق په حکم د ښار غلغله رستورانونه چې د حاجي یعقوب جامع جومات ته نژدې و او د هغه نه د عیاشۍ او فحاشۍ دیوې اډې په توګه کتل کېده او چېتیده او هلته د دولت مخورو ګډ راتګ کاوه بند کړي.

همدغه راز د مرستون تیاتر (ننداری صحنه) چې هغه هم د فحاشۍ د یوه مرکز بڼه غوره کړې وه وتړل شو.

همدارنګه د شفیق حکومت د بهرنیو هېوادو د ځینو سفارتونو او ډیر شمیر افغانانو د مخالفتونو سره سره په کابل ښار کې د یوې کلیسا د ورانولو امر صادر کړ. دغه کلیسا د دارالامان د سړک په اوږدو کې د روسیې د سفارت تر څنګ په قاچاقي ډول جوړه شوې وه.

په کورنی او بهرنی سیاست کې د شفیق نوښتونو په حقیقت کې د ده د حکومت او رژیم د واړو د له منځه تللو زمینه برابره کړه. په دې برخه کې د ده تر ټولو مهم کار د ایران سره د هلمند رود د اوبو د تړون لاسلیک کول و. ده دغه تړون په هېواد کې د ننه او په غیر مستقیم ډول د روس لخوا د سختو مخالفتونو سره سره لاسلیک کړ.

شفیق له هغو لومړنیو کسانو نه وو چې د ثور د بدمرغي کودتا نه پس سمدستي ونیول شو. هغه یې د نورو پخوانیو لوړپوړو بندیانو سره د ملي دفاع د وزارت د ودانۍ په ترڅنګ کې لاندې سمڅو کې تقریباً یوه اونۍ بندي

ساتلی وو. د همدې میاشتې په ۲۳ یا ۲۴ مه نېټه یې د شپې لس بجو په شاوخوا کې د یوشمېر نوروبندیانو سره دوداني نه وایستل. خلیل الله چې بیا وروسته د کارمل تر رژیم کې د جنرالۍ رتبې ته ورسېد او د دفاع وزارت د مرستیال څوکۍ یې هم ترلاسه کړه کله چې د خلقیانو په وخت کې د پرچم د ډلې د نورو لوړ وغړو په څېر د خلقیانو لخوا بندي شوی و، په جېل کې یې د نوروبندیانو په وړاندې اعتراف کړی و چې ده شفیق د کابل په هوائي ډګر کې په تومانچه په سر وویشت.

د اساسي قانون په عملي کولو او له ځینو اکثرواوشکېلاکګرو څخه خلاصون په لاره کې د شفیق لیری لید او ستر همت تر تله پاتې وي شفیق په دې عقیده و چې افغانستان د خپل (۳۱۶۰۰۰) مربع کیلومتر مساحت او تقریباً ۱۵ ملیونی نفوس په سلوکې د ۲٫۵ کلنۍ زیاتوالي په پام کې نیولو سره کولی شي چې دودې او مدني آزادیو په برخه یو مثالي هېواد وګرځي. هغه عقیده درلوده چې په افغانستان کې به بېلا بېل قومونه او نژادونه د یوه داسې واحد ملت د منځته راوړلو مخه ونشي نیولی چې په کده سره د خپل پرمختګ د پاره کار وکړي. هغه د خپل څومیاشتنۍ صدارت په موده کې په ډاګه کړه چې انسان کولی شي دیرې نا اندوله شورا سره په بریالی توګه کار وکړي. هغه او د ـ کابینې غړو به یې پرله پسې څو ساعتونه په صبر او تېنګار سره کار کاوه هغه هڅه کوله چې د خلکو په منځ کې د ملي پېژندګلوۍ احساس منځته راولي*.

ډاکتر حقشناس په خپل کتاب «دسایس وجنایات روس در افغانستان»

---

*- د نهایت تفصیل له پاره وګورئ د هغه قانون اساسي اساسی ... د صباح الدین کشککي لیکنه له ۸۰ ـ ۹۵ مخونه.

کې لیکلي؛

روسانو د شفیق د حکومت پر نسبت د خپلې ویرې او غوسې له مخې په ژوره توګه داوضاع څارنه کوله او په سخته اندېښنه کې لوېدلي ووا و د لارې ګودرد پیدا کولو په لټه کې ؤ ځکه دوی پوهېدل چې له یوه تازه کار، حساس، پوه ، هوښیار ، ځیرک او بانرژۍ حریف سره نښي کولي د دوکې ، داراو تهدید له لارې مخکې ولاړشي ځکه خو روسان پدې لټه کې شول چې هر څنګه وي سبايي شفیق له منځه یوسي دوی لومړی دا هڅه وکړه چې دربار پدې قانع کړي چې شفیق له مخې لیرې کړي خو نه توانیدل. روسان ورځ تر ورځې د شفیق له اجرایي قدرت څخه په تشویش او ویره کې لوېدل .

شفیق له ایران او پاکستان سره د روسانو تو طیئو او شیطا نتونو له مخې دا ډیکو خبر پېرتیا تر متوجه ؤ ځکه خو هغه هڅه کوله چې له دغو ګاونډیو اسلامي هېوادو سره د روابطو له منځه د غه سړطاني دانې لیرې کړي.

د هیلمند او بوټترون وروسته شفیق له خبریالانو سره په مرکه د ـــ افغان ملت د جریدې د خبریال د دغې پوښتنې په ځواب کې چې د پښتونستان مسئله به هم پدغه ډول حل کړی شي وویل هو !
مونږ نه غواړو افغانستان د پښتونستان قربان کړو.

روسانو د خپلو ټولو امکاناتو په لګولو غوښتل شفیق له منځه یوسي پدې اړه لنده او اسانه لار چې د روس د کټو تضمین وکړي او د مستقیم تېري او تسلط لار ورته برابره کاندي په لومړی قدم کې

هغه د داؤد خان رامنځ ته کول ؤ څود خپل تیري او تسلط د مقدمې په توګه ترې کار واخلي .

په خارجي او داخلي ډګرونو کې د شفیق نوښتونه او جدي کړنې د دې ښیري ورکاوه چې افغانستان به په لنډه موده کې په خپل ځان متکي شي او د ښکېلاک ګرو لومې به وشلېږي لکه چې په ۱۳۵۲ لمریز کال د ثور په ۲۷ اعلان وشو چې ۱۵۲ صنعتي پروژې د ۴ ملیونو افغانیو په لګښت په پښتو درول کېږي چې د هغې د په کار لوېدنې او ګټه اخیستنې سره د هېواد ګڼې ارتیاوې پوره کېدلی شوې د ۱۳۵۲ د جوزا په ۲۳ نېټه اعلان شو، چې ۱۰ بېلا بېلې فابریکې د ۲۳۰ ملیونو افغانیو په لګښت جوړېږي چې د تولید ، د کارګرانو له پاره د کار د پیداینې ، پانګې اېښودنې او د اړتیاوو پوره کېدنې او داخلي منابعو د په کار لوېدنې له مخې یې ځانګړی اقتصادي ارزښت درلود. د پوهنې په برخه کې هم ځانګړي پاملرنې ترسره کېده او لیدل کېدل چې نوي علمي پروګرامونو د عملي کېدو له امله به د فرهنګي استعمار د نفوذ مخه او د ځوانانو د افکارو د مسموم کېدو لاره ونړل شي د لوړو زده کړو د وزارت تأسیس او د لوست د زده کړې د پروژو له نوی سره په علمي او عملي بڼه عیار ول په ډېره جدي بڼه او چټکتیا سره پرمخ بیول کېده .

د دغو ټولو جدي او اغېزمنو هڅو جریان چې د هېواد د اقتصادي حالت او د وګړو د بدبختي ، فقر ، لوږې او بېکارۍ د عواملو د له منځه وړلو او د بهرنیو طاقتونو د نفوذ د مخنیوي په لاره کې ترسره کېدل د مسکو دوېرې او غوسې اورونو هم ژبغړانده کړل او له دغه ویرې چې

هېڅ نه دغه پسته او توده مړۍ چې کلونه کلونه یې د هغې د تر لاسه کولو له پاره هلې ځلې کړې له لاسه ورکړې د شفیق د حکومت د نسکورېدو له پاره پر داؤد خان لاس وواهه او خپله مخه یې پرانستلې پرېښود. او کمونین له خپلې مخې یو ستر خنډ چې هغه دیوه پوه، هوښیار، مدبر او عامل حریف موجودیت له منځه یووړ»*

مرحوم شفیق د خپل صدارت د پرولیزه موده کې وکولی شول چې د اسلام دښمنه عناصرو د فعالیتونو په وړاندې د یو ه کلک بند بنسټ کېږدي او د لا دینیت او فساد پر ضد کې اصلاحي فعالیتونه بسیج کاندي.

ټولو موقوته خپرونو ته لار ښوونه وشوه چې د اسلامي مقالو او مضامینو له پاره اختصاصي مخونه ولري د اداري فساد په تېره رشوت پر ضد د شفیق د حکومت هر اړخیز فعالیتونه او د سلطنتي کورنۍ د ځینو خودسرو عناصرو مقابله د شفیق د جرئت او شهامت ښکارندوی کېدل کېږي.

د کهیځ اسلامي جریده د ۱۳۵۱ لمریز کال د دلوې د لومړۍ نېټې په ګڼه کې لیکي:

«ښاغلی شفیق په خپله مطبوعاتي مرکه څرګنده کړې چې موږ د خلکو هیلې د اسلام د مقدس دین د اساساتو د پیروۍ په اړه درک کړې او هغه دردچې په خلکو کې له مقدساتو سره د بې پروایي او ساتېرۍ له اړخه پیدا کېږي ما خپله حس کړې موږ به خپل ټول توان د دغه ډول سرغړونو د مخنیوي په لار کې په کار واچوو»

---

* - دزیات تفصیل له پاره وګورئ دسایس و جنایات روس در افغانستان - ډاکټر حقشناس ۲۲۲ — ۲۳۰ مخونه.

کهیځ لیکي « د بناغلی شفیق د دغه څرګندونو زمونږ په نزد ځکه د تبصرې او پاملرنې وړ دي چې پدې وروستي لسیزه کې د حکومت یوه مشره نه یوازې پدغه ډول صراحت د دغه وړ سرغړونو په هکله نظر ندی څرګند کړی او د هغو د مخنیوی په لارکې یې د مسوولیت احساس ندی کړی بلکی غالباً هغه څه چې د خلکو په وړاندې له مقدساتو سره بې پروایي او ساتیرۍ ګڼل کیږي دوی بې پروایي او دښمني نده ګڼلې او هغه یې د سیاسي ډلو ترمنځ یو ډول اختلاف ګڼلی همدارنګه هغوی، د دغه ډول سرغړونو د مرتکبینو د اصلي څیرې له بربنډولو څخه ځانونه کوښه کړي او د اجرئت یې نشو کولی چې د هغوی له څیرو پردې لیرې کړي او هغوی لکه څنګه چې دي ـ هغسې ټولنې ته وروښیي او د قانون منګولوته یې وسپاري ،)

کهیځ په پای کې لیکي ،، موږ پداسې حال کې چې د بناغلی صدراعظم شفیق د دغه احساس او درک هرکلی کوو نو یا تروچې زمونږ په عقیده ، دیوه صدراعظم تر ټولو ستره دنده پداسې شرایطو کې چې افغانستان د تاریخ له نازک پړاو څخه تیریږي داده چې اسلامي ارزښتونو ته پاملرنه وکړي او د ـ اسلام د مقدس دین د ښکنځو او لارښوونو په رڼا کې دما دي پرمختګ په لارکې ګړندی قدمونه واخلی *

شفیق که طالب وُکه محصل ـ که د دولت مامور وُ او که په پوهنتون کې استاد ـ سفیر و او که وزیر او صدراعظم د هېواد د پرمختګ او له هېواد څخه د جُبیبا کګرو دلاس په لنډون او دنړیوال استکبار د توطیئو او مانورو څخه د هېواد د ژغورنې او په خپلو پښو دریدنې هیله او احساس یې په زړه کې

* ـ کهیځ اسلامي جریده د ۱۳۵۱ هـ ش د دلوې دلومړۍ نیټې ګڼه

غورځنګونه وهل هغه دهېواد د پرمختګ سخت لېوال و چې د ده د دغه مینې او احساس څرګندوی له لیکنو او شعرونو او شپه او ورځ کار او عمراني پلانونو او موقف له مخې ښه تر الګېدی شي.

خوځنګه چې نرېخور ښکېلاک د دغه ډول هستیو په دښمنۍ او له منځه وړنه کې په هېڅ ډول وحشت او شیطانت دریغه نکوي او د غه ډول کسان تر ټولو لومړي له مخې لیرې کوي. او ډېرلوا ستعماري ناولو اهدافو په لار کې یې سترخنډ بولي ځکه خو یې په دښمنۍ کې په هېڅ ډول جرم او دسیسه صرفه نکوي نو خپلې خبرې د شهید شفیق پد غه وینا پای ته رسوم چې هغه د صدارت په وخت کې د هلمند داوبو د تړون په هکله د توضیحاتو په لړکې کړې وه:

زه د افغانانو په فطري درا یت بشپړ عقیده لرم او نن یو ځل بیا د دغه درایت له مخې حساب او پر هغه تکیه کوم هغه څه چې زمونږ په توان او سنجش کې وو هغه مو د هېواد د مصلحت او ګټو د تأمین په غرض تر سره کېږل د دغه مصلحت او منفعت وروستی تشخیص د افغانستان د شورا په واک کې چې د خلکو دارادې ښکارندوی ده ځای لري.- که زمونږ کړنې یې سمې وګڼلې زه او زما ملګري په ښکاره ګوي چې هېواد ته د خدمت مصدر ګرځېدلي دي او که زمونږ په کار او سنجش کې تېروتنه ومومي بیا هم زمونږ ښکاره ګي ده چې د دولت اساسي قانون پر ښنبسوده چې د یوه حکومت تېروتنه پرېږدي او واتلونکی تو کم وتپیلی شي.

لوی او توانا خدای دې چې کردې چارې او کارونه د هغه په لاس کې دي زمونږ ها نداغیز من وګرځوي او د هېواد او خلکو ملي او مستقل ګټې

* - وګ: جبهه ملي جریده د ۱۳۵۱ هش د کب د ۲۴ نېټې ګڼه.

* * *

ما توقعات مردم خودرا در قسمت پیروی از اساسات دین مقدس اسلام درک کرده و دردی راکه از نگاه بازي کردن با مقدسات مردم پیدا می شود من هم حس کردم وماسعی خودرا برای جلوگیری ازتخطیهای درین قسمت به خرچ خواهیم داد. *

---

ورکړۍ ګهیځ جریده د شفیق د مصاحبې یوه برخه.

د ۱۳۵۱ لمریز کال د دلوې دلومړۍ نېټې ګڼه

الحاج ننګیال

د ۱۳٦۷ لمریز کال د ورې ۳۰ مه

بسم الله الرحمن الرحیم

# دسرخبرې

دا شعرونه هغه وخت ویل شوي چې ما په دارالعلوم کې دیوېـ — مجهولې آینده ې خواته زړه او نا زړه په وېره وېره خاپوړې کولې. دهغې نه وروسته زما په شروندکې دېر تحولات پېښ شول. دهغې آینده ې دېر برخه «اوس» شوه او که زه د دې اوس نه په دې کم وکیف خبروای ما به دهر یو کال نه په هماغه تنګ ، تریو او تیه تیاره دارالعلوم کې دوه او درې کلونه جوړ کړې وای.

د طالبانو په دنیا کې دې خورو ورواند ښبنو زما د ځوانی دماشوم توب په دوره کې دالفاظو جامې اغوستې دي او واقعاً ما ته دغسې ښکاره کېږي لکه یو ماشوم چې د تېې تیارې د نیا نه رڼا ته راووځي. د دارالعلوم تیاره هم د مور د ګېډې د تیارې نه کمه نه وه.

خود دارالعلوم د نیا یوه نښه هم لرله چې یوه نادره شان خودي ورسره

ملګري وه او ویرداش ؤچي اومي خبنتې يې پخولې. د سرې نه به يې هغسې شکاک جوړولو چې دیکارت به يې په هدیره کې په خپله خبره پښېمانه کړ. د دارالعلوم دغې میوې ته ګله زه د هغې او سپنې نظرکوم کومه چې په سندان باندې بې رحمه تکول شوې وي. که په اوسپنه کې پوره مټره نه وي پوهې په هغې شي او چې رښتيا يې اوسپنه وي هغه وغځېږي، بيا نو خوښه دا ښکوره چې څه شي ترې جوړوي.

زه چې اوس دا شعرونه لولم د دارالعلوم د دنیا د دې ټولو ټکونو نښې پکې شته مګر ورپسې هغه تاثرات او انفعالات هم راټول شوي دي کوم چې زما طبیعت په هغه دوره کې د آئینې غوندې دیوال څای نه يې چاڼ او يې غلبیله سره را اخيستي دي.

کابل راپیوته چه دا یا یې د چاپ د پاره وسپارل شوې زه په مصر کې وم. د هغې ځای نه ما ډېرو آشنایانو ته اسرې وکړې چې د چاپ کار ته يې پام وکړي او ځينو مخصوصاً زما مشر او محترم دوست صدیق الله رشتین چې هغه وخت د پښتو ټولنې رئیس ؤ خواري هم وکړه.

خو ګله چې زه له امریکې نه راوګرځېدم هرڅه ترې تم شوي وو او په ډېر شوا خون مې يو څو پاڼې په مطبعه کې وموندلې چې د کوم بد قسمته ماشين کار دغرمې دوه يې څلور ګاله په خپل تحرک کې تاوده کړي ساتلي وه.

او س ځينې دوستان مخصوصاً ښاغلی حبیب نوابي بیا بیا راته وائي چې دا پاڼې دې ضرور سره يو ځای شي زه د وی د اخیر منسم خو دا بلې يې نشم منلی چې زه به دې شعرونو کې دن په رڼا کې کوټې ووهم. دی يو څو نظمونو زما د ژوند انه دیوې معينې دورې تاثرات او خاطرې پخپلې غېږې کې امانتي ساتلي او زه د دغه امانت خیانت ته هیڅکله تیار نه یم.

# پیغام

د ژوندانه دکار او فعالیت د تود و هنګامو په شا وخوا کې د کوشش او مجاهدې د جذباتو د تازه کولو او د سرور او ارادو او احساساتو د پخلا کولو د پاره یو ازینۍ وسیله شعر او ادب دی .

د وجود او امکان په لامتناهي فضا کې د مینې او محبت ، سوز او ګداز ، درد او جفا او د حسن او جمال د انداز د تمثیل د پاره د شعر او شاعرۍ تخلیق شوی او د انساني ژوند په مختلفو ادوارو کې شاعر د دې وظیفې د رونډ مګر خوند و ربار په خوږ او دلچسپي او علاقمندۍ په خپلو اوږو اخیستی او د ژوندانه د هرې کرشمې او هر ناز او انداز نه یې په یوه ډېره ښکلې او زړه وړونکې پېرایه کې ترجماني کړې ده .
د عقل او فکر په جولانګاه کې د خیال تر وروو پروازونو زما د سینې په نغرۍ کې د یو ویده خوب لړ نه یو څو وار خطا بڅرې راوالوزول او د «پیغام» په نامه یې د پښتو ادبي ګلشن د پېښو کلونو بلبلانو ته په مینه وروړاندې کړل .

دا سندرې چې د یو مات زړه د بې سوره رباب داوم غږ وتارونو په تال - چې هغه د یو سرشار او تپېدونکي ذوق په تېره شاباز ترنګېدلی - ویلې شوېدي زما غوندې د یو آرزومند او ارمانجن شاعر اسرې ، زما اوښکې ، د ضمیر آواز او د خیال ګلونه دي .

لکه څنګه چې شعر او شاعري د حسن او جمال او د قدرت د رنګین تکوین

سره غاړه غړي. ده نوځکه شعراوادب وچ په وچه یوازې خشکې فلسفې ته خاصول زما په خیال داد ب او شاعرۍ سره یوه لویه ګناه ده. په همدې لحاظ په دې مجموعه کې دعصر، حیات اومحیط دالقائي مضامینو یا دملي اواجتماعي احساساتونه پرته د شعراوادب د حقیقي دوستانو او د حسن اوجمال د هواخواهانو دخوش طبعۍ د پاره دمینې اومحبت یا په بل عبارت دعشقي اوتغزلي اشعاروچاشنې هم تیاره شویده.

بنا پردې نودجمال منکرین، یاهغه کسان چې د خالص تغزل طرفدار دي اوشعراوشاعرۍ دژوند دپاره نه وسیله ګڼي دا دواړه د دې کتابګوټي دمطالعې نه حظ نه شي اخیستی.

په هرحال، زه دا د خپل ناقلاره زړه نازولې ارمانونه اود سوي سینې تاوده فریادونه ستاسې په مخکې ږدم او یې تمه یم چې داګرمې اودیوعالم سوزاوساز د جهان نه راغلي ناری سورې به زما دلالهانده او وارخطا ځلمیتوب د یورنګین سوغات په نامه ومنئ او زما دامیدلو ارادې په کالبوت کې به د حوصلې ساه واچوئ.

په مینه . م . شفیق

کابل دارالعلوم

حمل - ۱۳۳۰

(۱)

ماله غیږ د محبت کې ښکلی ځوند را

ژوندکي د جست او خيز لکه سپند را

بوالهوس يې چې لري په عيش ونوش کې

دعمل سپينو خولوکې هغه خوند را

(۲)

استغناء ديو بېخوده ديـــوانـه را

پاکيزه يـوه دمينې کاشـانـه را

زخمي زړه مې لا په نور وويښو رنګ کړه

سربازي ديو سرتيري پـروانـه را

(۳)

سرمنزل دارمانونو انقلاب را

دښوندون دمشکلاتوسره تاب را

دمستانوغونډې رندې آموخته کړه

سرنوشت مې باب دمینې دکتاب را

(٤)

افتخار دمحبت په بنګلي تاج را

سمندر نه اوردمینې کې خراج را

په بنګلي او په ماڼۍ مې لاړې توکړې

ته غنا دزړه اتوم په احتیاج را -

(۵)

د زړه کور کې مې د مینې مشال بل کړه

لیونی غوندې سرخوږه طبیعت را

د ثریا نه چې تر عرشه پکې ځای شي

د هدف په دایره کې هاو سعت را



(۶)

درد و غم د محبت کې خوند سرور را

د ہره ځای دار ما نو په کوه طور را

چې د حق د پاره دار په لیمو شکل کړم

هو مره جوش د سربازی لکه منصور را

٧

مالهٔ ژوند د طوفانی غونډۍ جهاز را

خاص یوتاته مې ملا تیته د نیـاز را

ستا د نهو آسمانو پردې چې وشـلوم

هومره زور، قوت د مینې د پـرواز را

٨

د تاثیر نه ډک یو توداو ګرم آه را

د زړه کور مې د دردونو منزلګاه را

کړه سپور مې غونډې درنه کړه مې پورته

هسې نه چې په خفت عروج د کـاه را

۹

مادیت د غرب لاهو کړو تباه کېږو

زموږ روح ته یو غیبي غونډي امداد را

معنوي اساس مو ټینګ په خپل قدرت کړه

د منزل په لوري بیا منډې د بـاد را

۱۰

آئینه چې د جهان د ننداره وشـي

دا یو موټې دردمند زړه مې جام جم را

د توحید لمبې مې سرې لره سینه کې

د بوتانو نه خالي د زړه حـرم را

(۱۱)

سرولمبو کې سمندر غوندې آرام را

په خپل لاس مو بن له دخپل فکر زمام را

چې ور.مه دحرکت اوژوند پکې وی

دسحر دباد په خوله هغه پیغام را

(۱۲)

زړه د درد د ملغلرو خزینه را

دهدف بام ته د لوړ همت زینه را

ورانه مینه مې په مینه ښایسته کړه

دپاک عشق په سرولمبو سوی سینه را

۱۳

په ځيګر د درد او مينې سوی داغ را

سينه ټوله د معنی د ګلو باغ را

دې تياره سفر کې لار رانه ورکيږي

ته په لاس د محبت ښکلی چراغ را

۱٤

يو مواجه طبيعت لکه درياب را

د ياري غوندې ټوپونه اضطراب را

بېنوا سره باران په ګريوان وکړم

هسې نرم، او به زړه لکه سحاب را

## ۱۵

توقع نه خدایه طبع بېګانه را

دزړه کور د پاکې مینې کاشانه را

قناعت او استغناء مې په نصیب کړه

دا نه غواړم د شاهانو سامانه را

## ۱٦

زولنې دا ندېښنو راته پرتې دي

یو طوفان د پاکې مینې د جنون را

چې سره خوا مې پرې باسي په خمودکې

دې نه شپې د درد و غم په مېړتون را

۱۷

دتقلید زولنې ماتې کړه زمونږ نه
دعمل جذبوکې ذوق دابتکار را

فریادونه رسوم بارګاه دعرش ته
آه دزړه ته مې آسمانه لویه لار را

۱۸

دڅروند په صف مې شمیرکړه که دانوی
دنیمګړي څروند عوض کې پوره مرګ را

زه به خوله دشکایت نه مهرولاک کړم
ته ګلشن له دڅروندون مې سازوبرګ را

۱۹

چې راحت پکې د قوم او جمعیت وي

ماله فخر د ازمېښت په دې کړاو را

چې سکه دې دا فلاس زما په نوم کړ

نو په زړه د محبت کانه جراؤ را

۲۰

په سینه کې یو د مینې مست طوفان را

دیقین په رڼا محو تورکمان را

په زړو قصو مې زړه ستړي ستومان شو

نوی عصر، نوی ژوند، نوی جهان را

۲۱

قرباني چې سرنامه دکوم اشروي

مدرسه کې درس ددغسې مضمون را

تماشې له يې چې ښکلي پردې پرېږدي

زولنې په پښو دمينې دمجنون را

۲۲

په لمبه دعشق پتنګ هومره ګداز را

زړه محفل دمحبت دسوز و ساز را

که مې شمېرې په تکيه د مفلسانو

په دولت دمحبت راله اعزاز را

## ۲۳

خمخانه د محبت کې بېباکي را

په يوه جرعه د مېو بېـــواکـــي را

چې کړې دې ته تکليف، کړه را په غاړه

نور د نور وله قيود و خـپـلواکي را

## ۲۴

ناقلاره رنځ د مينې لـه دوا را

د وصال په مستانه مېوشـفـا را

د شين خال غونډې به پښې پېښندې نه بدم

افتخار د پا بوسې لکـه حنـا را

٢٥

دیارانوسره مینه په اخلاص را
دګوهر وپسې هڅه دغواص را
چې د مینې دخوزند چراغ نه چورلي
طبیعت لکه پتنګ غوندې رقاص را

٢٦

چې منې يې نازنیاز هغه دلبر را
نغری سینه دمینې د شرر را
موجودیت مې حق دیاره تول فدا کره
تېروغشو د جفا له سینه سپر را

(٢٧)

دسحرچوپه چوپیاکي غریب ووي:

ماله ربه دخپل مرګ اوژوندون واك را

دادظلم اودستم دنیا دي واخله

ناولتیاد «امتیاز» نه جهان پاك را

(٢٨)

دزاهد سره په نفلومیوویش را

مفکوره دقام دخیر راله همیش را

سبه مي وړسوه قوم اوجمعیت ته

نه لرم غوندي ککریه زهرونیش را

٢٩

دي تورتم له لکه نمر هومره مثال زا
دېرو مخکې لار وو پورې وصال را

قافلې نه ورسته کېږو ساعت کم دي
په شيبه کې مونږ له توان دتلو د کال را

٣٠

فرعونان مو په سر ښېږ دي محوه کېږو
دجګړې تاب وتوان پخپل الطاف را

دانسان له وينو غوښو نه غذا خوري
ته نجات له هومره جور واعتساف را

(۳۱)

دملي او دقومي خدمت په لار کې

داغراضو، شخصیاتو احساس تېر را

دا نزل د میخانې ساقي دردمند ته

پیالې د درد نه ډکې نبې او چپ را

(۳۲)

د پتنګ غوندې د شمعې نه طواف را

دې تیاره کې ته یو نوی انکشاف را

«امتیاز» په عدل تندردې چې لوېږي

ته ږماد مساوات پخپل الطاف را

(۳۳)

په مکتب دعشق اومینې کې سبق را

زړه په وینو باندې سور لکه شفق را

دابده پورې سوروندون بدل کې

داشنا په غیږ کې عمر یو رمق را

(۳٤)

دخزان په ویره کډوبوتو و وې

روح راپود پسرلی کړه نوی ژواک را

دآزادوملتو د سیرغوندې

مخ په پورته مونږ له هم خانته چالاک را

(۳۵)

ماویستلي ده توبه د تشد د نه

په سره سینه ددې وطن اصلاح را

وزکارنه شودکوندی نه ارتقا ته

خوار پښتون له دې خوار یونه فلاح را

(۳٦)

آبرومند مې که ساتې زما خاونده

غني زړه او مړه سوله د قانع را

دجګړې د شړوندګرمې مې کمه مه کړې

یومشکل چې ورکومه بل مانع را

۳۷

حذر به له بېځايه احتياط را

اقتدار مې دخواهش په انضباط را

دڅروندون دجنګ جګړو په شاوخواکې

يو ساعت هم د پېمخوا اختلاط را

۳۸

ستا دنيا کې بس دمينې عالي اوج را

سبا ردزړه مې ډک دخير او درد په فوج را

ابا سيند دزماني يم لاهو کړي

دمستي او شور نه ډک څروندون دموج را

(۳۹)

انزواء او رهبانیت نه مې وساته

دعمل په څرخ مې تاو د ژوند ارت را

چې صحنه د اجتماع واړه توده کړي

هسې ګرم و جذبو له سینه بت را

(٤٠)

چې لري یې بلبلان د ګل په سازکې

پروانه غونډې په سوزکې ها سرور را

چې وزګار شم پیروي د خپل مسلک ته

خواري خپله په مثل د مزدور را

۴۱

نور مې هر څه د رته پرېښوده خاونده
آزادي او درد او مینه د جمال را

د اشنا په غېږ کې پروت یم لوبېږم
حقیقت تعبیر د دغه خوب او خیال را

۴۲

ماله زړه زخمي زخمي په درد دوا را
آزادي او حریت په دې دنیا را

چې د قام په درد مې وخوړې هغه خوښ کړم
هسې شاني ښکلې ذوق د تمنا را

٤٣

په ټولې دریا کار ومې که شمېرې

دغې دېرا و بتخانې پورې الحاق را

جنت څه کړم ستا رضا مې نصب العین دی

د وفا توفیق په عهد د میثاق را

٤٤

سینه پاکه له وهمونو، له وسواس را

ښه، محیط کې مې آوازله انعکاس را

چې خدمت یې قوت وکړې قام، تېر ته

هغه مټ، هغه بازوا و هغه لاس را

(٤٥)

سمه لاړلو یه په لوري د مرا د ړا

داویده پښتون چې ویښ کړي ها فریادړا

چې مې عزم ته دغره ویستل هېڅ نه وي

دکوشش جذبې مې وبښي د فرهـا د ړا

(٤٦)

په لاس مو نږ له د قومي ترقۍ جـــر ړا

د بشـر دخا ئنا نو چراغ مـــــر ړا

څوک چې غواړي : آزادي امن دې نه وي

د هغوی زوال نصیب، رنګو نه خـــر ړا

(٤٧)

یو سرشاره طبیعت لکه مینوش را
حق دپاره مال وسر دورکړی جوش را

داحساس لمبې مې سرې لره سینه کې
لمبدلی یم دَدرد کې عقل وهوش را



# پسرلي ته

نڅوي چې خپل آهنګ ته کائنات
دفطرت د ښکلي ساز هغه نغمه يې

په فرياد دي چې ماحول را ويښ بږي
دڅرونډ سينه کې ها د شور او نوزو زخمي يي

# دلعل بڅري

ستا په مخ سپينې خولې چې وي راماتې
ښکاريږي لکه دلعل د بڅرو

ما پرې شونډې چې را ټولې کړې شوه دکه
لکه ستا غونډې مې خوله د ملغلرو

# افغان ته

کاشکې مړوی چې مې هیڅ نه وی لیدلی

دا دستا په مرګ حساب ژوندون افغانه

نه شرمیږې ټول قومونه سره یو شول

ته شکیدلی تنهی پروت یې پریشانه

# اخطار

که دا یو چې هم په دې شانې اوسیږو

نو په مړوا ومعد ومو به شمیریږو

راځئ هلئ چې لاسونه سره ورکړو

ګوړی دا سیلاب (؟) چې راغی لاهو کیږو

# کاته

مړاوې سترګې چې راواړوي خماري
جوړوي مې په جهان دزړه کې لارې

په اعجاز دې لمبولی دا کاته دی
چې په شته مې زلزلې کړې رادوڅارې

# ماشوم توب

هم هغې نشاط پسې مې سترګې اوړي
چې مې وُدزړه سره په ګهـــواره کې

تبسم مې روح نواز په شونډو ښکلُ وُ
هرسبق مې وُدمينې سيپاره کې

# ژوندون

حقیقت دی افسانه ده که رومان دی

که کوم ساز دی چې نری نری غږېږي

بازیچه ده چې پرې لوبې ماشومان کړي

یوه دمه ده چې رنګ په رنګ ګډېږي

# احساسات

بله لاره را نه ورکه ده زندان کې

ستا په یاد ستړکې داوښکو، وینو ډنډ کړم

زړه مې وائي چې دا ټولې پردې وشلوم

په طغیان د احساساتو ځان درلنډ کړم

## ښکلا

دژوندون د سترګې توب سره په څوا کې
یو مرکز د قلارۍ او دلاسا شته

دعمل جذبې که غوړندی په کارشي
تازګي او طراوت لره ښکلا شته

## هموطنانو ته

پاکې کړې لارې دخپل قوم خادمانو لره
دوفالاس ورکړی د صدق خاوندانو لره

دنوی عصر نیرنګونو بل افسون راوړی
سترګې په برید پرانیستی ښایی افغانانو لره

# وطنخواه ته

د ملګرتوب لاره پيدا کړه د دوستانو سره

په يو مسلک باندې راغونډ شه اشنايانو سره

د اشنائی د ملګرتوب مفهوم يو نه دی ځکه

د دوی په منځ کې تفاوت شته هوښيارانو سره

# د سترګو لوبې

د سپوږمۍ د سپينو وړانګو په ډولې کې

غلې غلې د پردې لاندې موسکېږي

په غلا غلا کاته کوي وار خطا ګورې

دا د چا سره په سترګو کې لوبېږي ؟

# يوه آرزو

هغو ترو کي له بدو سترګو لري
دواړه نا ست وي ديو شړند خوړ په غاړه

يو په بل کي محويت هومره بېخود کړي
رانه هېر شوي دا مادي کائنات واړه

# خدای ته

خومره پاک او سپين کتاب دي راليږلی
سعادت دي دانسان په کي ليکلی

خوارمان دی دتاويل، تقليد آفاتو
رانه ورک کړو په حاشيو کي غلی غلی

## دحق دښمن

علمبرد «امتیاز» دښمن دحــق دی

داچې کرځي اورمیږ جګ او شمله شخه

یم لوی شوی خېل خانه دا بـراهـیم کې

لا به خوا په دې نمرود باندې کرم یخــه

## ښکلی یار ته

کائنات دې په رڼا دمخ رڼا دی

ستا په غېږ کې جوړ دې دنیا ارم دی

تبسم دی زلزله د تن په ښــارده

ستا په موسکو موسکو شو په وری قسم دی

# مينه

دحيات په خوب اوده وم بوګنيدمه
دامید رڼا مي ولیده رڼؤ یاکښي
قلاري مي په زړه راغله دلاسا شوم
څومره خوند دی په آرزواو تمناکښي

# امید

دا بي غاري سینه چي ګوري مینه داده
په طوفان یي دحیات کشتۍ لاهو ده
دلته لوبي په سر، تاج اوننګ ونام شي
عاشقي په شاهي نه کیږي محموده

# خلوت

چې حریم دې د اغیارو نه خالي کړو
کله ما هم د نسیم په څېر له در بله
ستا په شونډو مې وخوله د شپې په غېږ کې
او ده یوه د محبت وړ را ته بله

# د حیا خولې

د اشبنم د ګل په پاڼو کې ځلیږي
که په مخ دې د حیا خولې راماتې
چې په بدو بدو سترګو ورته ګوري
رب دې کړي د بوالهوس د مرګه پاتې

# دمحبت ګرمي

د دنیا ګلزار به وچه سره میره وه
که موسکی پکې پیمخی خوبان نه وی
پژمړوندون به د جمود سره تیاره وی
که ګرمي د محبت په جهان نه وی

# آزادي

یوه ښکلی شان لیلی د سعادت ده
چې پلوېي په مغرب کې نیمګخو دی
بوی د زلفو يي نسیم دلته راوړی
بس علاج زموږ د وارو تلوسو دی

# بېخودي

د پسرلي په دې رنګينو هنګامو کې
د تنکو تنکو ګلونو په وږمو کې

دا د چا غېږې ته ورغلم چې ځان مې
رانه ورک شو د يو مست حسن جلوو کې

# تمنا

د اسمان انګړ کې شي چې د يوې بلې
ما دې خواته په خندا خندا در بللي

زه د ستا او ته د شپې غېږ کې او ده يې
زما هر خواهش ته وايې : بلې بلې

## رسول ته

درنه زار شم سر را پورته کړه یو ځلي
په اشنا جامو کې ورک یې ستا پیغام کړو

په اسانه په کې ساویستل محال دی
هومره تنګ یې ستا هغه پراخ نظام کړو

## غلیم ته

دبستان کې د ایشیا چې زه استاد وم
تا لوستله هغه وخت کې سیپاره

مخ دې تور شه اوس زما د سر دعوه کړې
ته او خدای نو په همدغه قواره!

# التجاء

که داغواړې چې هرڅه نه بې پروا شم

مادمینې محبت په لاړولوندکړه

که به نه ګورم پرې حق او حقیقت ته

ما په هسې بې نظروسترګوړوندکړه

# انتخاب

په شنوترو د سپین غره کې چې آبشاردی

دهغې په غاړه وی له ماشوم توبه

لیونی روح مې پوازې وې هرڅه نه

بې له مینې، ازادی او نسکلیتوبه

# په خوب کې

د سرو ګلو ديوتل په منځ کې دواړه

غېږ په غېږ وو خوله په خوله غاړه په غاړه

ونسيم دې ثنا خوان په ګونګه ژبه

او سپوږمۍ وه په تعظيم غاړه په غاړه

# په خيال کې

د سپوږمۍ د پلوشو د سوري لاندې

په مکيز مکيز موسکي شي راسره خاندې

تسلي دې په خاموشو ګتو را کړه

دواړه شونډې دې په مينه کړې راوړاندې

# پښتون ته

دهاتي غوږ کې اوده يې بې انصافه
خلک ګرځي د اسمان په کنارو کې

ته لا وايې الف بې د تربګنيو
د نفاق او جهالت په سيپارو کې

# شکوه

دې دنيا کې چې هر څه زموږ نه دي
واک د بل ژبه د بل او کار د بل دی

مال زموږ ملک زموږ خواري موږ کړو
عيش د بل عشرت د بل اختيار د بل دی

# پوښتنه

دا سپوږمۍ په سپینو وریځو کې ښکاریږي
چې رڼګی رڼګی په مخ یې راخوره ده
که سپین مخ دې دیو سپین نقاب نه لاندې
د سپوږمۍ او د نمر پوري مسخره ده؟!

# تود ه غېږ

د دنیا له کیر وداره وم ستومانه
زه بېخبره ویروم چاله دې جهانه ؟
داتوده غېږه د چاوه چا په مینه
دا پاسته لاسونه کره چا پېرزمانه

## ماشوم توب

څه وړې وړې چې دليونتوب دی
چې شباب کې يو طوفان ورنه جوړيږي
يو صورت ديوې شوره بيخودی دی
سرشاري او بيغمي کې چې موسکيږي

## شباب

ليونی غوندې يو خوب دی بې تعبيره
اضطراب دی او که تندر په سکون دی
په مستی پکې غورځنگ کړي په موجونو
آ طوفان د بيخودی او د جنون دی

# بینایي

راسره وي سترګي دواړه پرده پوښي
چې يې نه ليده که هر څوړه به وا شوي

داچې اوس په پټو سترګو هم ليدل کړي
ستا په مينه کې قسم دی چې بينا شوي

# فریاد

دا توبې مې چې اغزي د زړه په سترګو
کوم بې رحمه کوم ظالم او کوم صياد دی

چې آسمان په ظالمانو نه رالويږي
معلوميږي بې تاثيره مې فرياد دی

# د ضمیر اواز

مخ د تورو وربځو نه راووزمه بربښنا یمه
ځاندمه ، ځلیږمه ، بې خړې سپین سبا یمه
زه د تحیر د زړه تیارې لره رڼا یمه
اوسم په سینه کې د زړه غوږ سره اشنا یمه
راځمه په جذبوشې طبیعت نو زه پیدا یمه
عمق د فطرت د زړه نه دې د نیا ته راشمه
پروت یم په سینه کې دامید او دارمان په شان
زه تورته د صدق یم ، بې ریا یم د وجدان په شان
پاک چې وي دوربځو نه د هغه شین آسمان په شان
برقړم د یقین غوندې او نه یم د ګمان په شان
غږ په ګوا هانو کوم هاتفي آواز غوندې
لاولرم د غیب سره موجود یم دیو راز غوندې
پاکه تکه سپینه صیقل شوې آئینه یمه
سیند د صراحت کې لاهو شوې سفینه یمه
بام د مراد ونوته په لنډه لار زینه یمه
تږو لاروو ته د چولي د منځ چینه یمه

اخلم الهامونه له قدسيانو له ملک ځنې
چه زه لم د پتنګ غونډې د شمعې د مسلک ځنې

نه د زړه پردوکي د احساس غونډې لو بيږمه
تا ته ستر ګوره اوره کې غونډې ځليږمه

زړه چې روند او کوڼ شي نو بيا هيڅ نه معلوميږمه
څه تدبير خونيم چې تيږ وزم خطا کيږمه

ځانله چې وجدان شي قيمتي دی مصلحت زما
نه ګوري ظاهر ته قوانين د شريعت زما

وران يم ارتجاع سره، دغدرنه نفرت کوم
پاکه مې القاء ده د بنيښې د حيا نت کوم

پاکي يې ساتم د آرزوګانو حفاظت کوم
زه ناري انسان ته د وحدت د امنيت کوم

نه منمه ظلم، رحم! رحم دی آواز زما
لاره د زړه پردوکي کړي آهنګ د بنکلي ساز زما

غواړمه انسان نه چې د درد وغم اشنا دې وي
زه غلامي نه منم آزاده دا دنيا دې وي

بدې مې تياره شي رڼايي د سپين سبا دې وي
محو دې رجعت شي که څه وي نو ارتقا دې وي

هره کالبود د ژوند له نوي ساه د حرکت غواړم
تېر دا قسانو نېږم د نوي ژوند نهضت غواړم

ژوند د شرف غواړم د ښکلو طرفدار یمه
خوب ته مې عادت نه دی د شپې ورځې بیدار یمه
نه یم په تقلید کې هوا خواه د ابتکار یمه
ایکې د وجدان سره روان په یوه لار یمه

سوزم خوشحالېږمه په قېږمه د سیند په شان
نورو په نشته خو احساس مې وي د خوند په شان

باد د حوادثو نه د ژوند بېړۍ پنا بیایم
تا ته د نن درس کې نوی فکر د سبا ښایم
تا د حال په ژبه، تحوله، په رښتیا ستایم
زه د شلم عصر د انسان په نامه دا وایم

تېر شه دا توم نه خو نن جهان د امنیت کړه ساز
بېرته کړه د زړه غوږونه، واوره د ضمیر آواز.



# څه معنی ؟

دومره فریب په سپین ځادر د قلندر څه معنی
په نوي عصر کې د دې زاړه دفتر څه معنی

که مفکوره د خیر خواهۍ وي په مغزو کې د چا
نو امتیاز د سپین او تور د لر او بر څه معنی

د زړه انګر چې کړي جلوې د پاکې مینې رڼا
داسې دنیا کې تظاهر د نمر قمر څه معنی

کوم استعداد چې تا پخپله خاورو لاندې کړلو
بیا د هغې پسې د ځان ځني سفر څه معنی

خدای چې بینا سترګې درکړې دي او دید شته پکې
بیا غور ځېدل نو له کږ نکه له کمر څه معنی

په لوخړ پوخړ د آشنا سره د شپې په غېږ کې
چې زه مور نه یم سپینې سترګې د سحر څه معنی



# ژېړګل!

«ته چې هسې بنايسته يې ژېړه ګله
ځکه تا په ځان شيدا کړله بلبله» (۱)

ستا د بوی نشې په باغ پېره داري کړي
دلته نه راځي خودي له دي کبله

کومه غوټه دې دمينې ورايله کړه
سرګوشي دې چې بلبل سره کوله؟

دادې رنګ دکوم مين د مخ اخيستی
چې دڅوندپانه دې دومره ژېړه شوله؟

دلبري کړې دبېدلو په جامه کې
دا دې څه پرده په مخ وغوړوله

اورېده مې چې تاوې په ګونګه ژبه:
سترګې وويڅه ليلی له تغافله

ګوره تېر وېستې ظاهر دسرو ګلونو
خساره دې سراسر وکړه کاکله

شاو خوا درنه چاپېره ګلان سره دی
ته يې ژېړ دمسافر وغوندې څله؟

نه پوهېږم چې د دې باغيچې ګل يې
که زما غوندې راغلی له کابله

حديقة الاندلس-قاهره
داپريل ٤ - ١٣٥٣

(۱) خوشال بابا

# دژوند سبق

څه په سر ژوندون او په امان د تحول ځني
کلکه تړ بګني چې د فلک ورسره نه وي

ځان دې بچ کړې په قوت باندې که ژوند غواړې
نه دې ځي مورچې له چې تو پک ورسره نه وي

دلته دې زموږ په خانانو ملکانو کسې
داسې سړی کوم دی چې کوتک ورسره نه وي

خلاص به بېګناه بندي د فکر کړي زموږ ملا
څو که زولنې د وهم وشک ورسره نه وي

لاړه به خطا تيار و کوڅو کې فلسفي نه شي
کله چې ملګری ايمان کلک ورسره نه وي

زه به د ساقي پيالې ته هيڅکله نژدې نه شم
ستا د خوږو شونډو جام چې ډک ورسره نه وي

پاتې به بېخونده دياری منډې رامنډې شي
ستا نه کله کله چې سترګک ورسره نه وي

اوږه ژوندون پورې کوه چې نه وي آزادي پکې
ورکه شاعري کړه چې مسلک ورسره نه وي

# رنګین سحر

د قدرت نه آواز راغی — اوږخ بدل شو د ژوندون
بیا د دهر سرنامه شوه — یو رنګین غونډې مضمون
د فطرت د تندې کړ ښې — کړې تفسیر دیو جنون
د ګلشن خرام ته شوق کړې — د زړه طفل ته لسون
د غوټې په غوږ کې ووې — بیا نغمې د صبا وون :
سترګې پرانیزه بهار شو — یو منوم مرګ دی د سکون
پسرلی په پیرکی را وړو — ګرد شو نو د ګردون
بیا بلبل او ګل پېښې کړې — د لیلی او د مجنون
د شاعر طبعې کړو پور ته — سر د فکر له ژنګون
حسن او مینې ته پرې ایښې — ځای د عقل افلاطون

د قدرت ګوتو سکوندلی، په مستۍ کې طبیعت دی
د جذباتو محشر جوړ دی، د رنګونو قیامت دی

د ګلشن په زرغونو کې — ګل په لاس پیاله نیولې
د نکهت له میرو ډک — د مستۍ په بوی لړلې
وار خطا غوټۍ غوربېږي — لکه خوب کې بوګنېدلې

بیا د ښکلو زلفې څنګې ... په ګلونو دګې شـولې
نرګس تیتې سترګې ناست وُ ... چې بوسې یې ورکـولې
داچې پیغلې غوټۍ خاندې ... خوسبا دې تښتـولې
د شبنم قطرې نسیم ته ... لکه طفل نازولې
د غونچې په ګهواره کې ... په نازناز یې زنګـولې
وجمال دجوپې شوخو ... په احساس لوپې کولې
قافلې د رنګ او بوی وې ... چې تالا و الا کیدلې

د سینې د سینه په غېږکې، اوښ بدل کړوارمانونو
داحساس کشتۍ لاهو شوه، د مستۍ په طوفانونو

دامید ماشوم ځلمی شو ... تمه یې وشوله د ځانه
مشاطه د جمال راغله ... ناوې جوړه شوه دنیا نه
پیغامونه د رید ې وو ... پیالې وغوړېځ زمانه
بیا د هوش متاع ورکیږي ... د عقلونو له دوکانه
معشوقې د سرو ګلونو ... سجدې غوړي د بورانه
ښا پیرو د حسن جوړ کړه ... یو ارم له دې جهانه
د ونو د وزې خپرې ... د باغونو د فضا نه
غوړې زلفو له ګلونه ... مستې پیغلې له باغوانه
دافق نه سحر ووې ... مبارک دې شه انسانه

د نسیم د ساز پر دو کې، کائنات چې نغمه بار شو
د بلبلو ترانو کې، پیغامونه دبهار شو

مرور چې ووتراوسه ... پخلاکیږي ارمانونه

د شبنم په رڼو اوښکو — ګلو مینځل مخونه
راته ښکاري چې سیالی کړي — انګو سره ګلونه
خوشالۍ شوی سره ټولې — پیاري شولو غمونه
بیا سواره کړه مطربانو — ګلشنونو کې سازونه
پېغلې پېغلې ګلرخانې — ورته اچوي لاسونه
سوز و ساز یې سره ګډ کړو — پېسرلي کړې څه کارونه
د ګلشن حرم کې بل دی — د سرو ګلو چراغونه
د ګلزار په لوري دروېي — ګلالۍ ملالې نجونه
بې منته شو حلموته — د پېمخو د یدنونه
عکس یې اخیستو د ګلو، رنګین شوي یې نظرونه
رنګارنګې رنګینۍ وې، یو عجیب «رنګین سحر» و



# دځلمو ترانه

لکه نسیم دباغ گلونو ته پیغام دی زمونږ
هدف دکار او د خدمت وطن او قام دی زمونږ
مونږه افغان ته یو قوي ملي وحدت جوړوو
د تفرقې د امتیاز په کور قیامت جوړوو
ورانې ویجاړې د وطن پخپل همت جوړوو
عدل انصاف او مساوات روح د نظام دی زمونږ
لکه نسیم دباغ گلونو ته پیغام دی زمونږ

مونږ په دین په ملیت باندې خپل سر ورکوو
د جفا غشو له سنگر غوندې ټټر ورکوو
واړه افغان ته د نهضت نوی خبر ورکوو
عقیده پاکه پاک ایمان په پاک اسلام دی زمونږ
لکه نسیم دباغ گلونو ته پیغام دی زمونږ

مونږه تعمیم د معارف پخپل وطن کې غواړو
نوی آهنگ د نوی ژوند پخپل چمن کې غواړو
د شمن دحق او حریت سر په کفن کې غواړو
خدمت د قام ته چې ولاړ وي پرې سلام دی زمونږ
لکه نسیم دباغ گلونو ته پیغام دی زمونږ

وطن نه بد بد رواجونه رسومات ورکړو
رنځونه ولېږي، بې علمي او خرافات ورکړو
دکار د منځ منځ نه بېځایه سکنات ورکړو

بنا پر حسن اعتماد باندې مرام دی زمونږ
لکه نسیم د باغ گلونو ته پیغام دی زمونږ

ظلم، رشوت، تملق دروغ او خیانت نه منو
غواړو په زړه کې درد او رحم، قساوت نه منو
سره همدرد یو بې دردي په رسمیت نه منو

ملا عالم مخلص خادم ته احترام دی زمونږ
لکه نسیم د باغ گلونو ته پیغام دی زمونږ

مونږ په ایشیا کې یو مسعود افغانستان غواړو
مونږ حکومت او حاکمیت د پاک قرآن غواړو
اباد په صلح وامنیت باندې جهان غواړو

ټینګ د سنجش فکر و تدبیر په لاس زمام کې دی زمونږ
لکه نسیم د باغ گلونو ته پیغام دی زمونږ

ملي مفاد په شخصیاتو مقدم دی مونږ ته
حکم د دین ـ عالم او مشر محترم دی مونږ ته
دفع د ظلم په بل ظلم هم ستم دی مونږ ته

د قوم خادم چې وي هغه خلمي امام دی زمونږ
لکه نسیم د باغ گلونو ته پیغام دی زمونږ



# فرهنګ جهاد

«فرهنګ جهاد» د افغانستان د ژغورنده، آزادي بخښونکي بر میال اسلامي غورځنګ د فکري او عقیدتي اصیلو کرښو په پام کې نیولو سره د کرد و مجاهدو لیکوالو، محققینو او شاعرانو د جهادي آثارو خپرولو ته چمتو دی - په تېره د هغو لیکوالو آثارو ته چې په بهرنیو لیرو هېوادونو کې د مهاجرت ژوند تېروي او هلته د خپراوي چارې ستونزمنې او له مالي ارخه ډېرې لګښت غوښتونکي دي.

څرنګه چې زموږ ستر اسلامي خوځښت له حساس او نازک دور څخه تېرېږي «فرهنګ جهاد» په نظر کې لري چې د درنو لیکوالو او ادب پوهانو د مرستې او لارښوونې له لارې په نژدې راتلونکي کې یوه موقوته ادبي خپرونه هم نشر کاندي.

فرهنګ جهاد د هر متعهد مجاهد لیکوال د آثارو د خپراوي په اړه د دوی د فرمایش مطابق د هغوی په خدمت کې دی او بېله مالي لګښت څخه د خپراوي ټول تکالیف په خپله غاړه اخلي؛ څنګه چې فرهنګ جهاد له مالي تنګسې سره مخ او له هېڅ لورې مرسته نه ده ورسره شوې ځکه خو به درانه لیکوال یوازې د چاپ لګښت ورکړي.

فرهنګ جهاد د هېواد د زړو ارزښتناکو آثارو او اسنادو ساتنه او تکثیر هم په نظر کې لري او هر هغه اثر چې زموږ له جهادي پالیسۍ سره ارخ لګوي او ضرورت یې محسوسېږي تکثیروي.

هیله ده د تکثیر لو باخبرېدنک له پاره د دغه دول ارزښتناکه آثارو په استناد سره قدرمن هېوادوال او فرهنګیالان له فرهنګ جهاد سره مرسته وکړي.

له کرد و متعهدو ورونو، لیکوالو او پوهانو څخه هیله کوو چې پخپلو معنوي او مالي مرستو او لوړ بینو سره د فرهنګ جهاد د پرمختیا او پیاوړتیا لار آواره او د جهادي ادب د بډاینې لو ساتنې په لار کې خپل مسؤولیت او رسالت تر سره کاندي.

## فرهنګ جهاد د دغو آثارو د چپراوی تکل کړی:

۱ـ دخوځښت د مؤسس لوی استاد پوهاند غلام محمد نیازي د خپرو شویو مقالو مجموعه

۲ـ وینه په قلم کې - د مجاهدو لیکوالو او وینا والو تذکره.

۳ـ جهادي فتواګاني

۴ـ اسناد تاریخی افغانستان

۵ـ پیغام - د محمد موسی شفیق د شعرونو د مناجاتونو برخه

۶ـ مجموعه مقالات مرحوم محمد کاظم شارقی

۷ـ افغان باقی کهسار باقی - د جهاد په اړه د پاکستان دار د ژبو انصارو وینا والو د - شعرونو مجموعه

۸ـ د عبدالهادي هدایت د مقالو مجموعه

۹ـ معرفی جراید و مجلات جهاد افغانستان

۱۰ـ د کهیخ د اسلامي جریدې د دوو کلونو کلکسیونونه

۱۱ـ به یاد سخنور صخره آفرین سترګ استاد خلیلی

۱۲ـ تعصب او د هغه اغیزه

۱۳ـ داستانونه او ولسونه - د جهاد په اړه د بهرنیو لیکوالو یاد داشتونه

۱۴ـ مجموعه مقالات الحاج مولوی عبدالرب احدی وردګ

۱۵ـ منزلونه او منزلونه - د اشعارو مجموعه

۱۶ـ دوینو نخښې - د جهادی خاطرو مجموعه

۱۷ـ کارتون ها سخن میګویند د مقاومت په اړه د خپرو شویو کارتونونو البوم

۱۸ـ تاریخچهٔ نهضت اسلامي افغانستان -

دو شعر شیدا

**داده یو څو چې درانه هیوادوال به له فرهنګ جهاد څخه خپلې مرستې نه سپموي.**

دژوندون میره او بزده ده ستړي کیږي
ګوټ دشوندو د شربت درسره واخله
دوصال ډیوه به مړه وي مونږ به نه یو
دا یه یاد د محبت درسره واخله

شفیق